ورځپاڼه
هيواد

اسلامي امارت:

# له نظامي تجهيزاتو په جدي ډول ساتنه کېږي

اسلامي امارت په افغانستان کې د شته وسلو پـه اړه اندېښنې بې ځايه بللې دي. د اسلامي امـارت مرستيال ویاند حمدالله فطرت رسنيو ته په استول شوي پيغام کې ويلي، چې په افغانستان کې ټولې وسلې خوندي دي او هيچا ته يې د ناسمې کارونې اجازه نه ورکول کېږي. نـاغلي فطرت دغه څرګندونې پـه افغانستان کې لـه بهرنيو ځواکونو د پاتې شويو وسلو او پوځـي تجهيزاتـو په تړاو د پاکستان د بهرنيو چارو وزارت اندېښنو ته په اشاره سره کړې دي. هېـره دې نـه وي، چـې د پاکستان د بهرنيـو چـارو وزارت ويانـد شـفقت علـي خان ورمـه ورځ ادعـا کړې وه، چـې په افغانسـتان کې له بهرنيـو ځواکونو پاتې شـويو وسلو د پاکستان د امنيت لپاره اندېښنې رامنځته کړې او په وينا يې دغـه وسـلې د ځينو ډلو له لـوري پاکسـتان کې د بريدونو لپاره کارول کېږي.

مؤسس: عبدالرووف بېنوا | د تاسيس کال ۱۳۲۸ لمريز | شنبه د شعبان المعظم ۲ يمه ۱۴۴۶ ق کال، د سلواغې ۱۳ مه ۱۴۰۳ ل کال، دفبروري لومړۍ ۲۰۲۵ م کال، خصوصي ګڼه ۵۳۲ مه، پرله پسې ګڼه ۶۲۲ مه، اتمه دوره

# د مولوي عبدالسلام حنفي په مشرۍ د اداري کمېسيون غونډه کې لازم تصميمونه ونيول شول



د رياست الـوزراء د اداري مرسـتيال مولـوي عبدالسـلام حنفي پـه مشرۍ، د اداري کمېسـيون ناسـته ترسره شوه. د رياست‌الوزراء د مطبوعـاتي دفتر د معلوماتو له مخې؛ د ناستې په پيل کې، تاکل شويو کميټو د کمېسيون له لوري د خپلو ورسپارل شويو فعاليتونو او کړنو په اړه راپورونه وړاندې کړي دي. وروسـته، د پوهنـې وزارت، کابـل ښـاروالۍ، د مکرورېانـو د ساتنې او خارجي امارتي شرکت او د بدني روزنې او ورزش عمومـي رياسـت اړونـد موضوعـات په هر اړخيـز ډول ارزول شـوي او د يـادو مـوارد پـه اړه لازم تصميمونه ونيول شوي دي.

برېښنا شرکت:

## د ۵۵۰ ميګاواټه برېښنا په ظرفيت ۱۳ لويې پروژې پرانيستل کېږي

د افغانستان برېښنا شرکت په نږدې راتلونکـي کـې د ۵۵۰ ميګاواټه افغانستان کې د اسلامي امارت په بيا واکمنېدو سره د برېښنـا د توليد



برېښنا په ظرفيت د ۱۳ لويو پروژو له پرانيستـل کېدو خبر ورکوي. عبدالبـاري عمـر وايـي، چې په په برخه کې د پام وړ ګامونه پورته شـوي، هغه څه چې په تېرو شلو کلونو کې ... ۳مخ

## هيواد کې د صنعتي پارکونو لپاره د ځمکې د وېش لړۍ پيل شوې

د اسلامي امـارت د مشرتابـه عاليقـدر اميرالمؤمنـين (حفظه الله) لـه پرېکړې وروسـته د هـيواد په يـو شـمېر ولايتونو کې د صنعتي ښـارګوټو لپاره د ځمکو د وېش لړۍ پيل شـوې ده. د سرچينـې د معلوماتـو له مخې د پلازمېنې کابل ځلورو خواوو کې د صنعتي ښـارګوټو لپاره د ځلور زره جريبه ځمکې پر ځانګړې کېـدو سربېره ۲۰ زره جريبـه ځمکه په کندهار، ننګرهار او بلخ، لس زره جريبه ځمکه په کنـدز او زر جريبه نـوره ځمکه په هر ولايت کې د صنعتـي ښـارګوټو جوړېدو ته ځانګړې شـوې ده. ځينې پر وړاندې د برېښنا د کمښت په ګډون شته ستونزو ته د رسېدنې



کارخونـه لرونکي دغـه ګام سـتايي ،خو د دوی د فعاليتونو غوښـتنه کـوي. د مسـئولينو د معلوماتو ... ۳مخ

## نيمروز کې ۴۷ روږدي کسان د درملنې لپاره راټول کړای شول

د نيمروز ولايت امنيتي مسـئولين وايي، چـې په دې ولايت کـې ۴۷ تنه روږدي کسـان د درملنې په موخه راټول او د ولايت زر بسـتريز روغتون ته لېږدول شوي دي. د ياد ولايت د نشـه‌يي توکو پر وړاندې د مبـارزې مديريـت مسـئول مولوي فيض‌محمد فيضاني باختر آژانس ته ويلي، چې د دې هڅو موخه د روږدو کسـانو درملنه او د ښاري نظم ښه‌والی دی. د يادونـې وړ ده چـې د زرنـج ښـار اوسـېدونکو د دې اقـدام هرکلی کړی او د ښـار د پاکـوالي او امنيت په برخه کې يې د دې ډول ګامونو د دوام غوښتنه کړې ده.

## استقبال وزارت اقتصاد از ادامه کمک‌های بریتانیا با مردم افغانستان

وزارت اقتصـاد، از ادامـه کمک‌های بشردوسـتانه بريتانيا با مردم افغانسـتان استقبال کرده اسـت. هميش فالکونـر، معاون




وزارت امـور خارجه بريتانيا در امور خاورميانه و شـمال افريقا، اخيـراً در صفحـه ايکس خود نوشته که اين کشور به کمک‌های بشری با مـردم افغانستان ادامه می‌دهد.مسـئولين در وزارت اقتصاد با اسـتقبال از اين موقف بريتانيـا، می‌گوينـد کـه برای بهبـود وضعيت اقتصـادی مردم افغانستان، کشورهای جهان بايد در تطبيق پروژه‌های انکشافی در کشور سهم بگيرند ... ص۳

## کام اير هوايي شرکت له کابل څخه خوست ته الوتنې پيل کړې

ورمه ورځ له پلازمېنې کابل څخه د خوسـت نړيوال هوايي ډګر ته شـوه. کام اير هوايي شرکت څو ورځـې وړاندې ويـلي و، چې د




د کام ايـر هوايي شرکت له لوري لومړنـی مسـتقيمه الوتنه ترسره داخلي پروازونو پـه ترڅ کې به هره اوونۍ... ۳مخ

## ننګرهار کې د يوه سرک د پخولو چارې پيل شوې

د جلال اباد ښار د اوومې ناحيې اړوند د دوسرکي چوک ۱۵ ګذر کې د يوه سرک د پخولو چارې د ښـاروالۍ په مالي ملاتړ د ۱۲ ميليونو افغانيو په لګښـت پيل شوي دي. دغه سرک ۴۹۰ متره اوږدوالي او ۷ متره پلنوالي لري، چې د سرک دواړو غـاړو تـه بـه ۴۹۰ متره ويالـه، يو پلچـک او ۱۲۰ متره ګلـدان هم جوړ شي.د پروژې د پرانيستې په مراسمو کې د جلال اباد ښـاروالي مرسـتيال مولوي محمد اسحاق سعيد، د تخنيکي او سـکتوري چـارو رييس، د ساختمان مسئول او د ناحيې آمر ګډون کړی و... ۳مخ

## هرات کې دکتابونو ننداړتون پرانيستل شو

هرات کـې د کتابونـو د يوه پلورنځي له لوري د سرک پر غاړه د کتابونـو پنځه ورځنی ننداړتون جوړ شوی دی.دغه ننداړتون د سـلواغې په ۱۱مه پرانيسـتل شـوی او تر پنځو ورځـو به دوام وکـړي.د دې ننداړتون د جوړوونکـو پـه وينـا، دې ننداړتون کې شـاوخوا ۳۰۰۰ توکه بېلابېل کتابونه ننداړې ته کېښـودل شـوي دي.حامد رسولي ،چې د کتابونـو دغـه ننداړتون يې جوړ کـړی، وايـي، د کتاب مطالعـې د ودولـو په موخه يې، ياد ننداړتون... ۳مخ

ذبيح الله مجاهد :

## د ټولو امارتي کارکوونکو معاشات به روانه مياشت کې ورکړل شي

د افغانستان اسلامي امارت د دولتي مامورينو د معاشـونو ځنډېدو په تړاو خبرې شـوې ګنګوسـې رد کړې.د اسلامي امارت مرکزي وياند ذبيح الله مجاهد پـر خپله اکـس پاڼه ليکلي : د ماليې وزارت مقام داډ ورکـړی، چـې د روانـې دلوې مياشـتې په ترڅ کې به د ټولو يو ميليـون او ۴۰ زره دولتي کارکوونکو معاشـونه ورکړل شي او هېڅوک دې په



دې اړه تشويش نه کوي. ده زياته کړې ،چـې د هېواد بوديجه داخلي بنسـټ لري، د بهرنيو مرستو پـه کولو يا نه کولو پورې... ۳مخ

## زابل کې ۴۷ روغتيايي مرکزونو ته ۱۱۶ قلمه درمل وېشل کېږي

د زابل د عامې روغتيا رئيس ډاکټر ميرويس افغان وايي، د ماشومانو لپاره د ملګروملتونو ملاتـړي اداري يونيسـف او د «مـوف»



موسسې له لوري د دې ولايت له ۴۷ روغتيايي مرکزونو سره د ۱۱۶ قلمو درملو مرسته شوې.نوموړي زياته کړه چې دغه درمل د کلات ښـار په ګـډون د ۱۱ ولسـواليو روغتيايـي مرکزونـو ته وېشـل کېږي.د ده پـه وينا: دا درمل به د دريو مياشتو لپاره تر يوې کچې د يادو مرکزونو اړتياوې پوره کړي او د درملو دکمښـت سـتونزه به راکمه کړي.ده وويل: ((ياد درمل د يونيسف اداري... ۳مخ

نعمت الله بارکزی:

## کابل ښار کې د ګڼې ګوڼې کمولو لپاره د موټرو هوايي پلونه جوړوو




پلازمېنـه کابـل ښـار ،چې شـاوخوا ۸ ميليونه وګړي په کې ژوند کوي، د نورو ښارونو په پرتله په کې ګڼه ګوڼه ډېر زياتـه ده. د کابل ښـاروالۍ د فرهنګي چارو سلاکار نعمت الله بارکـزي وايي، د موټرو ګڼې ګوڼې کمولـو په موخه په دې ښـار کې د وسـايطو د تګ راتـګ لپاره دريې سـتر پلونه جـوړوي. د بارکزي په خبـره، د موټرو دغـه هوايي پلونه د کابل ښار په درېيو له ګڼې ګوڼې ډکو ... ۳مخ




# د هیواد رغونې مسئولیت زموږ دی!

افغانستان، چې د څلورو لسیزو جګړو، بهرنیو لاسوهنو او سیاسي بې‌ثباتۍ سختې ورځې تېرې کړې، نن یې د الله تعالی په ستر فضل سره خپل بشپړ استقلال ترلاسه کړی. د جګړې پای ته رسېدل او د هېواد ازادې فضاء ته داخلېدل، بې‌ساری فرصت دی، چې باید افغانان یې په سمه توګه وکاروي، خو مهمه پوښتنه دا ده: ایا یوازې خپلواکي زموږ ستونزې حل کولی شي، که د هېواد د رغونې مسئولیت هم موږ ته راجع دی؟

هیوادونه له بهرنیو ځواکونو څخه د ازادۍ له ترلاسه کولو وروسته دوه لارې لري: یا د خپلې راتلونکې مسئولیت اخلي او پرمختګ ته متې رانغاړي، یا د نورو مرستو ته سترګې نیسي او د پردیو احتیاج کې پاتې کېږي. افغانستان د خپلواکۍ له نعمته وروسته اوس د دویم پړاو پر درشل ولاړ دی. که افغانان دا فکر کوي، چې نور به راشي او زموږ هېواد به را ورغوي، نو دا یو لوی غلط تصور دی.

تاریخ ثابته کړې، چې هېڅ ملت د بهرنیانو له‌خوا نه دی رغول شوی، بلکې تل د خپلو بچیانو قربانیو، زحمتونو او کار ته اړتیا لري. هغه ملتونه چې نن د نړۍ اقتصادي، ساینسي او سیاسي مشري کوي، هېڅکله د نورو مرستو ته نه دي ناست، بلکې د خپلې ځان بسیاینې پر اصل یې عمل کړی.

په تېر کې زموږ هېواد ته بېلابېل بهرني قوتونه راغلي، ځینې د جګړې په نوم او ځینې د مرستې په پلمه، خو نتیجه یې څه شوه؟ افغانستان لا هم وروسته پاتې دی. اوس، چې موږ د خپلواکۍ نعمت لرو، باید د اقتصادي، تعلیمي، زېربنایي او ټولنیز پرمختګ لپاره خپل رول ادا کړو.

اقتصادي خودکفایي: موږ باید د بهرنیو مرستو پر ځای داخلي تولید ته وده ورکړو، کرنې، صنعت او تجارت ته خاصه پاملرنه وکړو، ترڅو هېواد اقتصادي ثبات پیدا کړي.

معیاري تعلیم: زموږ راتلونکی نسل باید داسې وروزل شي، چې هم له دیني پلوه رښتیني وي او هم په عصري علومو کې پیاوړی وي.

سیاسي ثبات: که موږ د خپلو ملي ګټو پر بنسټ متحد شو او د نظام پیاوړتیا ته کار وکړو، نو هېڅوک به زموږ پر داخلي چارو تسلط ونه لري.

د هیواد زیربنایي رغونه: سرکونه، بندونه، فابریکې او نورې اقتصادي پروژې هغه اساسي کارونه دي، چې باید پرې تمرکز وشي.

خپلواکي ستر نعمت دی، خو که موږ د دې نعمت ارزښت ونه پېژنو، نو له لاسه به یې ورکړو. د هېواد جوړول زموږ مسئولیت دی. که موږ نن هم انتظار وباسو، چې نور به مو هېواد را ورغوي، نو د پردیو محتاج به یو، خو که نن کار پیل کړو، سبا به یو پیاوړی، خپلواک او ودان افغانستان ولرو.

# نړیوال عدالت که منافقت

احمدخان زیار

دا چې عدالت یا مساوات په ټوله کې په اسلام کې دي او نورې ټولنې په دې برخه کې نیمګړې دي

الله (ج) په خپلو ایاتونو او حضرت محمد(ص) په خپلو حدیثونو مبارکو کې په ډېر ټینګار سره له ټولو انسانانو څخه د مساواتو او عدل غوښتنه کوي او تل یې هم دا لارښوونه وه. الله تعالی په قران کریم کې فرمایي: ژباړه:« مسلمانانو! الله تاسي ته حکم کوي چې امانتونه د هغو اهل ته وسپارئ او کله چې د خلکو په منځ کې فیصله کوئ، نو په عدالت سره یې وکړئ، الله تاسي ته په دې سره ډېر لوی نصیحت کوي او په باوري ډول الله اورېدونکی او لیدونکی دی.» (سورة النساء ۵۸ )

همدارنګه په حدیث مبارک کې راغلي دي چې ژباړه:« د خپلو اولادونو ترمنځ عدالت وکړئ» صحیح مسلم؛ او په بل حدیث کې راځي چې ژباړه:« الله تعالی له هغه قاضي سره محبت نه کوي چې د خلکو ترمنځ په عدل او انصاف سره پریکړه نه کوي» (صحیح بخاري.)

نو زموږ د صحابه وو او له هغو څخه د وروسته ټولو علماوو او مشرانو هم دا لارښوونه وه او هم همدا لړۍ روانه ده تر څو چې خدای مکړه د اسلام نور خپله روښنایي له لاسه ورکړي.

اوس به دې ته راشم چې تش په نوم کفري عدالت د اسلامي نړۍ په دوو مشرانو چې تل د مظلوم ترخنګ ولاړ وو او ولاړ دي، تل خلکو ته د عدالت درس ورکوي، دوی په دې تورنوي چې خدای مه کړه دوی د بشر ضد کړنې ترسره کړې دي، خو الحمدلله چې د امارت مشران او بالخصوص امیر المؤمنین شیخ هبت الله حفظه الله تعالی له داسې کړنو نور انسانان منع کوي او هیوادوالو ته هر وخت په عدل او انصاف سره لارښوونې کوي.

اوس به په دې برخه کې د نړیوال تش په نوم عدالت له اصلي حقیقت څخه پرده پورته کړم، هغه دا چې امریکا چې د دې عدالت په راس کې قرار لري څومره د بشر ضد کړنې یې ترسره کړې دي او ورپسې به د نورو هغو هیوادونو نومونه واخلو چې د بشر په تاریخ کې یې داسې ظلمونه وکړل چې تاریخ یې له لیکلو عاجز دی او د لیکونکو یې د لیکلو پر وخت ګوتې رېږدي.

د امریکا د ظلم لنډ تاریخ

امریکا د ۲۰مې او ۲۱ مې پېړیو په اوږدو کې په ګنو هیوادونو کې د جګړو، تجاوزاتو او نظامي عملیاتو برخه شوه. له ځینو کړنو څخه به یې دلته پرده پورته کړو او شروع به یې له ویتنام څخه وکړو. د ویتنام جګړه له ۱۹۵۵ـ۱۹۷۵ پورې چې امریکا په دې جګړه کې ښکیله وه، په ترڅ کې یې میلیونونه بې ګناه انسانان ووژل شول او د ویتنام هیواد زیربناوې ویجاړې شوې. امریکا له سویلي ویتنام څخه ملاتړ وکړ ترڅو چې د کمونیستانو د ځواکمنېدو مخه ونیسي.

په افغانستان کې د امریکا د جګړې تاریخ، دا د امریکا د ظلمونو او جګړې تر ټولو لوی تاریخ دی چې دلته به یې په لنډ ډول بیان کړم.

امریکا په ۲۰۰۱ـ۲۰۲۱ کې پر افغانستان حمله وکړه ډېر بمونه یې پر افغانانو واورول. په لومړیو دربوو میاشتو کې یې ۷۳۰۰۰ بمبارونه پر عامو وګړو وکړل چې په ترڅ کې یې کورونه، جوماتونه، مدرسې او ښوونځي بمبار شول او مکمل کورونه ونړېدل، ماشومان، ښځې، سپین ږیري او ځوانان یې شهیدان کړل. امریکا په افغانستان کې داسې ظلمونه وکړل چې تاریخ به یې هېر نه کړي، یو داسې نظام یې رنګ کړ چې ټول وګړي پرې راټول وو او د اسلام ټول امرونه پکې پلي کېدل او له ټولو هیوادونو څخه امن و، خو دوی د یوې بهانې له مخې چې موخه یې د هیواد اشغالول و، ټول هیواد د باروتو په لمبو وسوځاوه، خو افغانانو ورته خپل غیرت وښود او له هیواده یې پسې واخیستل.

امریکا یو بل ظلم چې د عراق له وګړو سره یې وکړ، هغه دا و چې پر عراق یې په ۲۰۰۳ـ۲۰۱۱ حمله وکړه. په دې پلمه چې د صدام حسین حکومت د اتومي وسلو د جوړولو کوشش کوي. په دې جګړه کې په زرګونه عراقي وګړي شهیدان او ټپیان شول کورونه یې ونړېدل، زیربناوې یې له منځه لاړې او د عراق ټولنیز او اقتصادي نظام یې له سقوط سره مخ کړ.

امریکا اوس هم پر ډېرو هیوادونو داسې بندیزونه لګولي دي چې دوی یې له خوراکي بحران سره مخ کړي دي. ټول زیان یې ښځو او ماشومانو ته رسېږي. له امریکا وروسته اسرائیلو د نړۍ د انسانیت پر مخ تور داغ کېښود، په لاندې برخه کې به لږ رڼا پرې واچوو.

په تیرو څو میاشتو کې اسرائیلو داسې ظلمونه وکړل چې انسانیت ترې شرمېږي چې په دې ظلمونو کې امریکا او ورسره متحدین یې شامل وو. مکمله غزه یې بمبار کړه او ۴۵۰۰۰ بې ګناه فلسطیني وګړي یې چې زیات شمیر یې ښځې او ماشومان وو شهیدان کړل. ټول ښوونځي، روغتونونه او د اوبو رسولو شبکې یې له منځه یوړلې، حتا ډېر ماشومان له لوږې مړه شول چې دا د بشریت تر ټولو ستر جنایت و او دی.

نورو هیوادو ته به راشو لکه برما چې اوس هم پر مسلمانانو ظلم کوي. څوک ورته څه نه وایي. همدارنګه برتانیې په افغانستان کې ډېر بې ګناه افغانان په شهادت ورسول خوهیڅا ورته څه ونه ویل، خو په افغانستان کې چې د جنګ ټولو خواوو ته عمومي عفوه اعلان شوه، حتا داسې کسان هم وو چې یو کس یې د ټولې کورنۍ په مخ کې په شهادت رسولی و، خو چې اسلامي امارت خدای کامیات کړ، نو ټول دښمنان یې وبښل چې دا د انسانیت په تاریخ کې یو لوی کار و او خدای د افغانانو په نصیب کړ، خو د نړۍ جابرې محکمې چې په رښتیا سره چا ظلم کړی وي او اوس هم ظلمونه کوي هغو ته هیڅ هم نه وایي، ځکه چې دغه محکمې دوی رامنځته کړې دي، نو ځنګه دوی ته څه ووایي. کفارچې هیڅ وخت هم له مسلمانانو نه راضي کېږي، الله تعالی په دې اړه فرمایي: ژباړه:« ای مسلمانانو! تاسي به د مال او سر دواړو په ازموینه کې واچول شئ او تاسي به له اهل کتابو او مشرکانو څخه ډېرې ځوروونکې خبرې واورئ. که تاسي په دې ټولو حالاتو کې د زغم او له خدایه د وېرې په چلن ثابت اوسئ؛ نو دا د سترې حوصلې کار دی.» (سورة ال عمران ۱۸۶ )

الله په بل ځای کې فرمایي: ژباړه :«یهودیان او عیسویان به هیڅکله له تا څخه خوشحاله نشي، تر څو ته د هغو په لاره (دین) لاړ نشي. دوی ته په کلکه ووایه چې سمه لاره یوازې هماغه ده چې الله ښودلې ده او که ته له هغه علم څخه وروسته چې درکړ شوی دی، د هغو په خواهشونو پسې لاړ شې؛ نو ستا هیڅ دوست او مرستندوی نشته چې د الله له نیونې څخه دې وژغوري.» (سورة البقره ۱۲۰»

نو مسلمان ته هم امر دی چې د کفارو په دوستۍ به نه تیر وځي، ځکه چې دوی هیڅ وخت له مسلمانانو سره دوستي نه ده پاللې او تل ورته په کمین کې دي او تل به وي. الله تعالی مسلمانانو ته فرمایي: ژباړه:«ای مؤمنانو! یهودیان او عیسویان خپل ملګري مه نیسئ، دوی په خپلو منځو کې سره ملګري دي او که له تاسي څخه څوک هغوی خپل ملګري نیسي، نو بیا هغه هم په هماغو کې شمیرل کیږي. په دې کې شک نشته چې الله یې له خپلې لارښوونې څخه بې برخې کوي.»

نو کفار چې تل پر انسانانو ظلمونه کوي او اوس هم په ظلمونو کې روان دي نو د دوی لپاره محکمه نشته او نه به جوړه شي خو مسلمانان چې تل یې انسانانو ته د دوی خپل مشروع حقوق ورکړي دي، خو کفار یې په ظلم تورنوي چې په دې سره به په مسلمانانو کې کومه کمزورتیا رانه ولي او لا به یې هم برحقې داعیې ته متوجه کړي. ځکه چې الله بار بار مسلمان ته هم دا امر کوي چې کفار به هیڅکله هم له تاسو خوشحاله نه شي ترڅو تاسو د هغو دین نه وي منلی.

په اخر کې به دا ووایم چې د نړۍ پر ټولو کفارو داسې بده ورځ ده چې ولې په یوه هیواد کې داسې اسلامي نظام دی چې د ټولو حقونو ته په درنه سترګه ګوري نو د نړۍ کفار خو داسې نظام نه شي برداشت کولی او موږ هم له خپلې برحقې داعیې څخه نه تیرېږو که نړیوال هر څومره د عدالت په نوم بې عدالتۍ راته رامنځته کړي.

# افغانستان له هند او پاکستان سره د متوازنو اړیکو غوښتونکی دی

رحمت‌الله فیضان

افغانستان، چې په وچه کې محصور هېواد او ستراتېژیک موقعیت لري، هڅه کوي چې له خپلو ګاونډیو هېوادونو، په ځانګړې ډول له پاکستان او هند سره، متوازنې اړیکې وساتي. دغه هېواد، چې له لسیزو جګړو او بې‌ثباتۍ وروسته، د یوه سوله ییز سیاست د پرمخ بیولو په لټه کې دی، غواړي خپلې بهرنۍ اړیکې د ملي ګټو او ښه ګاونډیتوب پر بنسټ تنظیم کړي. د همدې سیاست د څرنګوالي په اړه، د افغانستان د بهرنیو چارو د وزیر، مولوي امیرخان متقي څرګندونې، یوه خپلواکه او واقع بینانه تګلاره بیانوي، چې په رغنده تعامل ټینګار کوي او له غیرضروري شخړو څخه د ډډې کولو اصول رعایتوي. افغانستان او پاکستان؛ پېچلې، خو ضروري اړیکې د اسلامي امارت د فتوحاتو پر مهال، د پاکستان حکومت د افغانستان پر مخ خپلې دروازې وتړلې، په داسې حال کې چې د تحریک طالبان پاکستان (TTP) موضوع هغه مهال مطرح نه وه. دغه اقدام او ورپسې محدودیتونه، چې د کندهار او سپین بولدک له فتحې وروسته وضع شول، د پاکستان د پالیسۍ د بدلون څرګندونه کوي.

وروسته له دې چې په ننګرهار کې د امنیتي تحولاتو په ترڅ کې، اسلامي امارت ځینې هغه وسله‌والې ډلې، چې له پاکستان سره یې تړاو درلود، بې‌وسلې کړې، د پاکستان حکومت پر خوست برید وکړ او د کونړ ولایت ته یې بې‌پیلوټه الوتکې واستولې. دا په داسې حال کې دي



چې له افغانستان څخه پاکستان ته هیڅ ډول تهدید متوجه نه دی او افغانستان تل د دوستانه اړیکو د ساتلو هڅه کړې ده. په ترانزیټي برخه کې، د افغانستان دروازې د پاکستان پرمخ خلاصې دي او هېڅ ډول خنډ نه ورته جوړوي، خو د پاکستان داخلي ستونزو، لکه سیاسي، اقتصادي او امنیتي بحرانونو، د دغه هېواد د پریکړو پر تګلاره اغېزه کړې.

سره له دې، د افغانستان د بهرني سیاست اصول روښانه، شفاف او د متقابل احترام پر بنسټ ولاړ دي. افغانستان نه غواړي چې د پاکستان داخلي بحرانونه د دواړو هېوادونو پر اړیکو منفي اغېزه وکړي او لاهم پر سیاسي او اقتصادي همکاریو ټینګار کوي.

افغانستان او هند؛ تاریخي او ستراتیژیکي اړیکې

افغانستان او هند ژورې تاریخي، کلتوري او تجارتي اړیکې لري. له کوشاني دورې نیولې، د غزنوي، غوري او لودین سلسلو تر واکمنیو پورې، دغو دوو هېوادونو پراخ تعاملات درلودل.

په معاصر تاریخ کې، هند د افغانستان د خپلواکۍ ملاتړ کړی او اوس مهال د دغه هېواد له مهمو اقتصادي شریکانو څخه دی.

هند د افغانستان په مختلفو برخو کې، د بیارغونې، د سلما بند، د افغانستان د پارلمان د ودانۍ جوړولو، د تعلیمي نظام پراختیا او افغان محصلینو ته د تحصیلي بورسونو د ورکولو په برخو کې مهم رول لوبولی دی. د همدې لاملونو له امله، افغانستان هوډ لري چې له هند سره خپلې سیاسي، اقتصادي او تجارتي اړیکې وساتي او پراخې یې کړي.

افغانستان ټینګار کوي چې له هند سره یې اړیکې د پاکستان پر زیان نه دي او همدارنګه له پاکستان سره یې روابط، له هند سره پر همکاریو هېڅ اغېزه نه لري. افغانستان هیڅکله نه غواړي چې د پاکستان د خوشحالولو لپاره له هند سره خپلې اړیکې پرې کړي او نه به د هند په خاطر، له پاکستان سره دښمني وکړي. له څلورو لسیزو جګړو او ناورینونو وروسته، افغانستان د اقتصادي پراختیا او سیمه ییز ثبات په لټه کې دی او د همدې لیدلوري له مخې، له ټولو هیوادونو سره تعامل د ملي ګټو پر بنسټ تنظیموي. د افغانستان بهرنۍ تګلاره د مثبتې بې طرفۍ، ښه ګاونډیتوب او د ملي ګټو پر اصولو ولاړه ده. دغه هېواد، چې د جنوبي او مرکزي آسیا ترمنځ د یوه پله حیثیت لري، غواړي له پاکستان او هند سره متوازنې، رغنده او باثباته اړیکې ولري. افغانستان هیله لري چې د سیمې کړکېچونه کم شي او اقتصادي او دیپلوماتیکې اړیکې د دې لامل شي چې د سیمې خلک سوکاله او باثباته ژوند ولري.

# د افغانستان اقتصاد د اسلامي امارت تر واک لاندې د نظم او ثبات پر لور روان دی

که څه هم ځینې بهرنۍ کړۍ هڅه کوي د منفي تبلیغاتو له لارې د افغانستان اقتصادي وضعیت کمزوری وښیي، خو حقیقت دا دی، چې اسلامي امارت د اقتصادي ودې، مالي نظم او عایداتي سرچینو د پراخولو لپاره عملي ګامونه اخلي.

د نړیوالو بنسټونو راپورونه، د افغانیو د ارزښت ثبات، د صادراتو زیاتوالی او د ملي عوایدو لوړوالی دا ثابتوي، چې افغانستان له اقتصادي پلوه نه یوازې منظم دی؛ بلکې پرمختګ هم کوي.

د اسلامي امارت تر واک لاندې د افغانیو ارزښت نسبتاً ثابت پاتې شوی، چې دا د قوي مالي مدیریت څرګندونه کوي. د اقتصادي ستونزو اصلي نښه د اسعارو بې‌ثباتي وي، خو اسلامي امارت توانېدلی، چې د اسعارو بازار کنټرول کړي، افغانیو ته ثبات ورکړي او د سوداګریزو معاملو توازن وساتي.

که څه هم نړیوال بندیزونه د افغانستان د بانکدارۍ نظام ته ستونزې جوړوي، خو اسلامي امارت توانېدلی، چې له دې خنډونو سره مقابله وکړي او د پیسو د داخلي جریان لپاره حل‌لارې ومومي.

د اسعارو زیرمې نسبتاً ثابتې ساتل شوي او د داخلي راکړې ورکړې سیستم د خپلو منابعو پر بنسټ تنظیم شوی.

ځینې بهرني هیوادونه او رسنۍ د افغانستان د اقتصادي وضعیت په اړه منفي تبلیغات کوي، چې موخه یې د اسلامي امارت کمزوری ښودل، د خلکو ذهنیت خرابول او د هېواد اقتصادي پرمختګ ته خنډونه جوړول دي، خو دا تبلیغات له حقیقت څخه لرې دي، ځکه چې د افغانستان اقتصاد د اسلامي اصولو پر بنسټ تنظیم شوی او په تدریجي ډول پیاوړی کېږي.

بهرني تبلیغات ادعا کوي، چې افغانستان له شدید اقتصادي بحران سره مخ دی، خو شواهد برعکس دي. د اسلامي امارت د واکمنۍ له پیل راهیسې، انفلاسیون کنټرول شوی، د خوراکي توکو بیې نسبي ثبات لري، د عوایدو راټولونه منظمه شوې او د دولت لګښتونه د شفافیت له مخې تنظیم شوي دي. دا ټول فکتورونه د دې ښکارندوی



دي، چې اقتصادي بحران شتون نه لري. افغانستان یو کرنیز هېواد دی او اسلامي امارت هڅه کوي، چې د کرنې سکټور ته وده ورکړي.

د کروندګرو ملاتړ، د کرنیزو توکو تولید ته وده ورکول او د اوبو مدیریت هغه اقدامات دي، چې د کرنې پراختیا ته یې زمینه برابره کړې. افغانستان د طبیعي زېرمو له پلوه غني هېواد دی او اسلامي امارت د کانونو د استخراج لپاره نوي میکانیزمونه رامنځته کړي دي.

د کانونو شفاف مدیریت، د استخراج قراردادونه او د ملي عوایدو زیاتوالی د دې لامل شوی، چې اقتصاد ته لا زیات ثبات ورکړل شي. اسلامي امارت له چین، روسیې، ایران، پاکستان او نورو هېوادونو سره سوداګریز تړونونه کړي، چې دا د افغانستان د صادراتو د زیاتوالي او اقتصادي پراختیا لپاره مثبت ګامونه دي.

د ټرانزیټي لارو پراخول او د سوداګرۍ اسانتیاوې د دې لامل شوي، چې افغانستان په سیمه ییزه کچه د سوداګرۍ مهم مرکز شي.

په ټوله کې ویلی شو، چې د افغانستان اقتصاد د اسلامي امارت تر واک لاندې منظم دی او هېڅ داسې جدي اقتصادي بحران شتون نه لري او دا د اسلامي نظام د بریا یوه ښکاره نښه ده. باختر

# افغان اعلانات



## اعلان فروش ملکیت محمد جان الکوزی تحت تضمین قرضه شرکت پیروزبام افغان!

به تاسی از هدایت قرار قضائی نمبر ٤١ مورخ ۲/۱۱/۱۳۹۹ صادره ریاست محترم دیوان رسیدگی به قضایای بانکی و مالیاتی ولایت کابل که ذریعه قرارقضائی نمبر ۱۸۵ مورخ ۱۹/٤/۱٤٤٦ محکمه اختصاصی ولایت کابل مورد تائید قرار گرفته است، قرار است ملکیت اسامی محمدجان الکوزی ولد غلام محی الدین واقع شهرنو مربوط ناحیه چهارم شهر کابل، از طریق داوطلبی و مزایده به فروش میرسد.

یك دربند حویلی مندرج قباله شرعی نمبر ۷۳۱ بر ۱۰٦ مورخ ۲۳/۵/۱۳۸۵ و قباله شرعی نمبر ۲۱۲ بر ۲۹ مورخ ۳/۲/۱۳۹٦ مرتبان محکمه وثایق حوزه چهارم شهر کابل دارای مساحت ٦ بسوه و ۱۵ بسواسه که به اساس بیع جایزی نمبر ٤۲۳۱ بر ۱۷ مورخ ۱۳۹٦ /۲۷/٦ مرتبه محکمه وثایق حوزه دوم شهر کابل تحت تضمین بانك قرار دارد دارائی ۵ منزل بشکل پخته واقع کوچه شاه بوبوجان شهرنو از طریق داوطلبی و مزایده از طرف هیئت مختلط بفروش میرسد، کسانیکه تقاضا خرید انرا داشته باشد بعد از نشر إعلان الی میعاد قانونی عرایض خویش را به ریاست محترم حقوق ولایت کابل و یا ریاست محترم عزیزی بانك بسپارند. شرطنامه را ملاحظه و تضمین نقداً اخذ میگردد.

شماره تماس: ۰۷۹۷ ۸۸۸ ۱۵٤

### اطلاعیه مفقودی

یک پاسپورت تجارتی به اسم عبدالواحد فرزند شیر احمد مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۰۱۰

### اطلاعیه مفقودی

یک قطعه ترجمه انگلیسی تذکره کاغذی به اسم محمد اشرف فرزند محمد یوسف مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۸۹۲۰

### اطلاعیه مفقودی

یک قطعه قباله شرعی دارای نمبر ۸۳۲/ ۲۹۰ مورخ ۱۳۴۸/۴/۲۶ مرتبه محکمه ولسوالی ده سبز به اسم محمد اسماعیل فرزند فیض محمد ولدیت غلام بای مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۰۰۱

### اطلاعیه مفقودی

یک قطعه قباله شرعی دارای نمبر ۷۰/۲۴۱ مورخ ۱۶/ ۱۳۴۷/۲ مرتبه محکمه ولسوالی ده سبز به اسم محمد اسماعیل فرزند فیض محمد ولدیت غلام بای مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۰۰۲

### اطلاعیه مفقودی

یک قطعه قباله شرعی دارای نمبر ۷۶/۲۵۹ مورخ ۱۳۴۷/۲/۷ مرتبه محکمه ولسوالی ده سبز به اسم محمد اسماعیل فرزند فیض محمد ولدیت غلام بای مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۰۰۳

اطلاعیه فروش موتر

اسامی محترم عبدالحکیم نبی زاده لمتید یک عراده موتر پلیت ۲۳۹۶۷- ۳ ش کابل نوع تیوتا کرولا غرفه دار خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای غورحنگ فرزند امر الله بفروش رسانیده است. بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۸۹۸۶

### اعلان لیلام

ریاست زراعت ولایت کابل در نظر دارد به تعداد ۱۳۴ قلم اجناس داغمه خویش را از قبیل موتر سایکل ، وسایل زراعتی ،کامپیوتر ، پرنتر ، بطری ، میز ، چوکی و غیره را به لیلام بگذارد. بناء متقاضیان محترم میتوانند درخواست های خویش را به ریاست زراعت ولایت کابل ، واقع بادام باغ سپرده و به تاریخ ۲۹ دلو ۱۴۰۳ که از سوی وزارت محترم مالیه تعین شده است غرض مزایده در جلسه حاضر شوند. نوت :۱۵٪ تضمین قبل از شروع پروسه داوطلبی از داوطلبان اخذ میگردد ، متقاضیان مطلع باشند .۸۹۹۲

---

### د ۵۵۰ میګاواټه برښنا ...

هیڅ پاملرنه ورته نه وه شوې. نومـوړي دغه راز ټینګار کوي ،چې هېوادوالو ته د ډاډمنې، پاکې او منظمې برښنا د برابرولو په موخه برښنا شرکت پر ۱۳ لویو پروژو ،چې په نږدې راتلونکې کې به پرانیستل شي کار کوي. ښاغلي عمر زیاتوي: په دې نږدې راتلونکو میاشتو کې به تر ۵ نیم سوه میګاواټو پورې داسې پروژې افتتاح کړو ،چې هغه به د هېواد په بېلابېلو ولایتونو کې وي او د هېواد د برښنا له عمومي شبکې سره به وصل کیږي.د برښنا شرکت عملیاتي رئیس، صفي الله احمدزي هم وایي: د برښنا شرکت عمومي رئیس او مشرتابه پلاوي تل په دې هڅه کې دي، چې موږ باید خلاوې ډکې کړو. د دې خلا په ډکېدو سره موږ کولای شو په کابل، ګاونډیو ولایتونو او آن تر کندهاره ۲۴ ساعته برښنا ولرو. ورته مهال د امارتي شرکتونو رئیس برښنا د صنعت، سوداګرۍ، اقتصاد او بنسټونو د پراختیا یو اساسي لامل وباله او زیاته یې کړه چې اسلامي امارت په بېلابېلو برخو کې د افغانستان د ځان بسیاینې لپاره هڅه کوي.د امارتي شرکتونو رئیس، احمد جان بلال هم وایي: په نظامي ډګر کې او په سیاسي میدان کې مو استقلال ترلاسه کړ، همدا راز هڅه به کوو چې په اقتصادي میدان کې هم مستقل و اوسیږو. د برښنا شرکت د مسئولینو په وینا: د کابل په شمال کې د نوي ۱۵ کیلو ولټه سب سټېشن په پرانیستل کېدو سره به ۲۵ زره کسان له برښنا برخمن شي او نوي غځول شوي مزي د لسو ترانسفرمرونو په نصبولو سره تنظیم شوي او د ۱۳ نورو د تنظیم چارې هم رواني دي.

### هیواد کې د صنعتي ...

پربنسټ په ټول هېواد کې شاوخوا پنځه زره سترې او کوچنۍ تولیدي کارخونې فعالیت کوي چې له ۴۰۰ زرو زیاتو کسانو ته یې د کار زمینه هم برابره شوې ده. سپوږمۍ راډیو

### استقبال وزارت اقتصاد ...

عبدالرحمان حبیب، سخنگوی وزارت اقتصاد، تاکید می‌کند که تغییرات اقلیمی، خشکسالی‌های پیهم و وضع محدودیت‌ها، مردم افغانستان را با مشکلات اقتصادی مواجه ساخته است. حبیب افزود: (( پاسخگویی موثر به ناامنی اقتصادی و بهبود وضعیت معیشتی، تمرکز به برنامه‌های تقویتی خانواده‌ها دارد که بتواند سبب ایجاد شغل و بلند بردن قدرت خرید مردم گردد، همکاری جامعه جهانی ازطریق کمک‌های بشری شفاف وعادلانه به ساحات آسیب‌پذیر و افراد نیازمند و تطبیق برنامه‌های انکشافی که بتواند فرصت‌های کاری را به‌وجود آورد، می‌تواند سبب بهبود وضعیت اقتصادی مردم ما شود.))در همین حال، شماری از مبصرین اقتصادی می‌گویند که کشورهای جهان، نباید مسایل بشری و اقتصادی را سیاسی سازند.تاج محمد تلاش، مبصر اقتصادی می‌گوید که کمک‌های بریتانیا می‌تواند در زمینه جلوگیری از مهاجرت افغان‌ها و کشت کوکنار در افغانستان موثر باشد.تلاش گفت: ((نه تنها بریتانیا ،بلکه اکثریت کشورهای جهان تعاملات خود را با مردم افغانستان اقتصادی بسازند نه سیاسی، بریتانیا یک دیدگاه خوبتر در ارتباط به سیاست‌های اقتصادی نرم دارد و از این طریق میتوان معیشت زندگی اکثریت مردم افغانستان را تامین کرد تا از مهاجرت‌ها، کشت کوکنار و قاچاق انسان جلوگیری شود.)) از سویی هم امیدالله قاسمزی، مبصر اقتصادی می‌گوید که برای بهبود وضعیت اقتصادی مردم افغانستان، کشورهای جهان باید کار پروژه‌های بزرگی را که پس از تحولات سیاسی متوقف شده است، از سر گیرند.امیدالله قاسم‌زی گفت: (( در مجموع کمک‌های بشردوستانه فقد در کوتاه‌مدت می‌تواند از شدت فقر جلوگیری کند، راه اندازی پروژه‌های توسعه‌یی توسط جامعه جهانی و سازمان‌های بین‌المللی در افغانستان، می‌تواند رفاه و آسایش را در جامعه به بار آورد و اقتصاد بنیادی را در جامعه رقم بزند.))با این حال، مقام‌های امارت اسلامی بارها از کشورهای جهان خواسته‌اند که کمک‌های بشری را از مسایل سیاسی جدا نگهدارند.

### هرات کې دکتابونو ...

جوړ کړی.بله‌خوا د هرات د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست د فرهنګ او هنر آمر حمیدالله غیاثي وایي، چې له دې نندارتونونو ملاتړ کوي او په وینا یې، مطالعې ته د ځوانانو هڅولو لپاره هڅې کوي.په دې وروستیو کې د ځوانانو له لوري د ټولنیزو رسنیو کارونه، هېواد کې د مطالعې فرهنګ کمرنګه کړی او دکتاب لوستلو لپاره د ځوانانو لېوالتیا کمه شوې.

### د ټولو امارتي کارکوونکو ...

اړه نه لري.دا په داسې حال کې ده، چې له دې وړاندې داسې ګنګوسې خپرې شوې وې، چې ګواکې د دولتي کارکوونکو معاشونه ځنډېدلي دي.

### ننګرهار کې د یوه سړک ...

د تخنیکي او سکتوري چارو رییس د پروژې مسئولینو ته د ښه کېفیت سپارښتنه کړې او د پروژې پر اهمیت یې خبرې کړې دي.د سیمې اوسېدونکو د سړک جوړېدو هرکلي کړي او د نورو پرمختیایي پروژو د عملي کېدو غوښتنه یې کړې ده.

### کام ایر هوایي شرکت ...

دوه پروازونه د کابل او خوست ترمنځ ترسره کوي. یاد پروازونه به هره پنجشنبه له کابل څخه خوست ته او هره جمعه له خوست څخه کابل ته، همدا راز هره یکشنبه له کابل څخه خوست ته او هره دوشنبه له خوست څخه کابل ته ترسره کېږي. د یاد شرکت له لوري د ټکټ بیه ۵۰ ډالره ټاکل شوې ده.

### کابل ښار کې ...

سیمو کې پلان شوي ،چې راتلونکې میاشت به یې د جوړېدو عملي چارې پیل شي.بارکزي څرګندوي: (( د موټرو د پلونو په اړه ویلي شم ،چې موږ د کابل ښار په درېوو ساحو کې د دغو پلونو جوړولو پلان لرو. یو پل د نجات منار په ساحه کې د انټرچېنج په بڼه جوړېږي، بل پل د برکي په څلور لارې کې او درېیم هم د کابل ولایت ته مخامخ د جوي شېر په طرف له پراختیایي سړک سره جوړېږي. د دې پلونو د ډیزاین چارې بشپړې شوي او راتلونکې میاشت کې به یې عملي کارونه پیل شي.))

### زابل کې ۴۷ روغتیایي ...

او موف موسسې له‌خوا خریداري شوي. ۶۰ قلمه درمل د یونیسف له خوا او ۵۶ قلمه د موف موسسې له‌خوا خریداري شوي. دا درمل د مرکز کلات په شمول ۱۱ ولسوالیو کې د ۴۷ روغتیایي مراکزو لپاره دي. دا درمل به درېوو میاشتو لپاره بسنه وکړي.))د زابل یوشمېر اوسېدونکي وایي: بشپړو روغتیایي خدماتو ته لاسرسی نه‌لري او د ناروغانو د درملنې په برخه کې جدي ستونزو سره مخ دي.خو دوی هیله څرګندوي ،چې د دې ولایت روغتیایي مرکزونو ته د دغو طبي مرستو په رسېدو سره به یې صحي ستونزې یو څه حل شي.د زابل اوسېدونکي میراجان وایي: ((دا د زابلیانو لپاره یو د خوشحالۍ ځای دی، چې د یونیسف په همکارۍ د عامې روغتیا له‌خوا دا اقدام وشو، ځکه ډېر خلک په ولسوالیو او لرې‌پرتو سیمو کې په خصوصي روغتیایي مراکزو کې د درملنې توان نه‌لري.)) د یاد ولایت یو بل اوسېدونکي محمدنسیم وایي: ((مشکلات د درملو برخه کې ولسوالیو کې زیات دي. دا ډېر ښه اقدام شوی، موږ خوښ یو ،چې داسې ولسوالیو ته درمل لېږدول کېږي.))د روغتیایي برخو کارپوهان ټینګار کوي ،چې یوازې لنډمهاله مرستې د حل لاره نه‌شي کېدای او حکومت باید د اوږدمهالې روغتیایي تګلارې له مخې، روغتیایي مرکزونه پیاوړي کړي او د خلکو لپاره د وړیا درملنې اسانتیاوې برابرې کړي.د روغتیا برخې کارپوه میوند مېړني وایي: «یوازې لنډمهاله مرستې د حل لاره نه‌شي کېدای، دولت باید د اوږدمهاله روغتیایي پالیسۍ له مخې، د عامې روغتیا مرکزونه پیاوړي کړي او د خلکو لپاره وړیا درملنې ته لازمې اسانتیاوې برابرې کړي.»

### د ځینو ولایتونو لپاره ...

ټکنالوژۍ وزارت د شمېرو پر بنسټ، اوسمهال په هېواد کې پر څه باندې ۵۷۰ مخابراتي سایټونو کار روان دی او په دې وروستیو کې له ۵۰ ډېر مخابراتي سایټونه فعال شوي دي.

### د هیواد په لویو نظامي ...

سرپرست شیخ الحدیث سر محقق دکتور نور محمد ثاقب، د قرآن عظیم الشان د ترجمې او تفسیر پر ارزښت خبرې کړې او ویلي یې دي: "الحمدلله د ویاړ ځای دی چې د اسلامي امارت له راتګ سره سم د هېواد د ۳۴ ولایتونو په لویو نظامي مرکزونو کې پرله‌پسې د څلورم کال لپاره د اسلامي امارت د مشرتابه له لارښوونې سره سم، د ارشاد، حج او اوقافو وزارت له خوا د قرآن کریم د ترجمې او تفسیر دورې پیلېږي چې لله الحمد هر کال په کې توسیع او زیادت راځي.سږ کال به په ۳۳۴ لویو نظامي مرکزونو کې د قرآن عظیم الشان ترجمې ترسره شي چې له دې جملې څخه ۴۱ مرکزونه په کابل او پاتې ۲۹۳ مرکزونه یې په ولایتونو کې دي."سر محقق ثاقب په خپلو خبرو کې شیوخو او علماء کرامو ته ځینې اړینې سپارښتنې هم کړې او ټینګار یې کړی چې د قرآن کریم ترجمه او تفسیر باید په خپل وخت ترسره شي، د ترجمې ګډونوالو او مجاهدینو ته دې حاضري لازمې وګرځول شي او مجاهدینو ته دې د ښو اخلاقو، اخلاص، صداقت او دیانت لارښوونې وشي.همدا رنګه د کورنیو چارو وزارت مرستیال، د ملي دفاع وزارت او د استخباراتو لوي ریاست استازو او دغه راز رابلل شویو شیوخو په خپل وار سره ګټورې خبرې کړې او د ارشاد، حج او اوقافو وزارت د یاد نوښت ستاینه یې کړې ده.

هغوی د امکاناتو په حدودو کې د ارشاد، حج او اوقافو وزارت د یاد پروګرام د ښه ترسره کېدو په برخه کې د بشپړې همکارۍ ډاډ ورکړی دی.

### خوست کې د ۱۳ تنو ...

چې رښتیا دغه کسان دي یا غلط دي. هغه به د دوی له پلټنو څخه معلومیږي.))نوموړی زیاتوي ،چې پېښه کې ۱۳ کسانو خپل ژوند له لاسه ورکړی، چې پنځه ماشومان هم په‌کې شامل دي. ټېکه خان ماهر له حکومته غوښتنه کوي ، چې راتلونکې کې د ورته پېښو مخه ونیسي.د خوست امنیتي مسئولین وایي: نامعلومو وسله‌والو کسانو تېره اوونۍ د ښځو او ماشومانو په ګډون د یوې کورنۍ ۱۳ غړي په ډزو وژلي دي.په ورته مهال د سیمې اوسېدونکي وایي: د دا ډول نورو پېښو د مخنیوي لپاره باید ښکېل کسان ونیول شي او په عام محضر کې سخته سزا ورکړل شي.د خوست امنیه قوماندانۍ د امنیت آمر عبدالحلیم حیدر بیا وایي ،چې د یادې پېښې په تړاو یې، پنځه شکمن کسان نیولي دي.دی زیاتوي ،چې د پېښې په تړاو پلټنې رواني دي او په وینا یې، د نورو ښکېلو کسانو په لټه دي. تراوسه د دې پېښې انګېزه او څرنګوالي نه‌دی روښانه شوی.د وژل شویو کسانو جنازې خاورو ته وسپارل شوې ،چې پر ولایتي مسئولینو سربېره، ګڼشمېر عامو خلکو هم د جنازې مراسمو کې ګډون کړی و.

### فراه کې د غواګانو ...

د تولید په برخو کې فعالیت کوي چې شیدې او غوښې یې په سیمه ییز بازار کې پلورل کېږي. د سرچینې د مuلوماتو له مخې په هر فارم کې له ۵ څخه تر ۷ پورې کسان هم په کار بوخت وي.

### بدخشان کې ...

سویچ بورډونه او سلیټورونه شامل دي، چې په بهارک ولسوالۍ او د فیض آباد ښار په بېلا بېلو ناحیو کې به وکارول شي. د یادونې وړ ده، چې د بدخشان برښنا شرکت هڅه کوي د زیربناوو په ښو کولو او د برښنا رسونې د پوښښ په زیاتولو سره د برښنا اړتیاوې پوره کړي او د برښنا د کمښت ستونزې هوارې کړي.

### د هلمند ګرشک کې ...

((د کتابتونونو جوړول زموږ لومړیتوب دی. موږ هڅه کوو چې په ټولو ولسوالیو کې خلک د کتاب لوستلو سره بلد کړو، ځکه علم د پرمختګ بنسټ دی.))بله‌خوا د ګرشک اوسېدونکي د یاد کتابتون د پرانیستې په اړه وایي، چې د ځوانانو د زده‌کړو او مطالعې په وده کې به دا کتابتون مهم رول ولوبوي.د ګرشک اوسېدونکو هیله څرګنده کړه ،چې د دې کتابتون له لارې به ځوان نسل علمي وده وکړي او له مطالعې سره به لازیاته لېوالتیا پیدا کړي.

### امریکا کې د الوتکې ...

الوتکه کې ۶۰ مسافر او ۴ عمله سپاره وو. چارواکو ویلي، چې په بلک هاک هیلیکوپټر کې درې پوځیان سپاره وو. تر اوسه د دې پېښې د مرګ ژوبلې کره شمېر نه دی معلوم؛ خو د راپورونو له مخې تر اوسه د لږ تر لږه ۲۸ کسانو مړي له پوټامیک سیند څخه را ایستل شوي دي.

# Hewad Daily

شنبه د شعبان المعظم ۲ یمه ۱۴۴۶ ق کال د۱۴۰۳ ل کال د سلواغې ۱۳ مه د 2025م کال د فبروری لومړۍ



دورځپانو رئیس : انجنیر عُزیر «بریالی»
موبایل : ۰۲۰۲۵۲۶۳۴۰
آمر او مسئول مدیر : عطاء الله مبارز
موبایل: ۰۷۷۴۳۱۸۹۰۲
مسئول سکرتر: شېرمحمدنظري
موبایل: ۰۷۸۸۵۰۳۳۷۱

پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلورلارې، د حضوري چمن ختیځ، کابل افغانسان
داړیکو شمېره: س۰۲۵۲۶۳۴۰ - ۰۲۰
E-mail :info@hewaddaily.com
E-mail : hewad1948@gmail.com
دهیوادورځپانې انټرنېټي پاڼې دلاندې ویب سایټ له لارې هم کتلی شئ
ویب سایت: www.hewaddaily.com
دشکایاتو اوتوزیع څانګه:
۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹-۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶-۰۷۳۶۰۶۰۷۳


## اسلامي امارت:

# د نشه يي توکو کرکېله او قاچاق نږدې صفر ته رسېدلي

اسلامي امارت له افغانستانه د نشه يي توکو د قاچاق د کچې لوړېدو په تړاو د يوه ايراني چارواکي د څرګندونو په غبرګون کې ويلي، اوس په هېواد کې د نشه يي توکو د کرکېلې او قاچاق کچه نږدې صفر ته رسېدلې ده.د اسلامي امارت ويانډ وايي: کابل له تهران سره پر خپلو کړيو ژمنو ولاړ دی. د اسلامي امارت ویاند، ذبيح الله مجاهد ويلي: (( افغانستان ډاډ ورکوي اندېښنې بايد ونه اوسي، موږ



د هر ډول قاچاق مخه نيسو، نشه يي توکي په افغانستان کې له منځه تللي او د نشه يي توکو کرکېله او قاچاق نږدې صفر ته رسېدلی.))له دې وړاندې د ايران د کورنيو چارو وزارت امنيتي مرستيال علي اکبر پورجمشيديان له افغانستان او پاکستان سره په ګډو پولو کې د نشه يي توکو پر قاچاق اندېښنه څرګنده کړې وه او ادعا يې کړې وه چې، لا هم په افغانستان کې د نشه يي توکو زيرمې شته.

# د ځينو ولايتونو لپاره د ۱۴ مخابراتي سايټونو د جوړولو تړون لاسليک شو

د مخابراتي خدمتونو د تنظيم ادارې یا اترا په يو شمېر ولايتونو کې د ۱۴ مخابراتي سايټونو د دغه تړون د اترا او يو شمېر شرکتونو ترمنځ لاسليک شوی، چې پر اساس به يې په کابل،



جوړولو تړون د يو نيم ميليون ډالرو په ارزښت لاسليک کړی. د مخابراتو او معلوماتي ټکنالوژۍ وزارت ویاند ویلي، کندهار، پکتيا، پکتيکا، خوست او نورو ولايتونو کې ۱۴ مخابراتي سايټونه جوړ شي. د مخابراتو او معلوماتي ... ۳مخ

# د هيواد په لويو نظامي مرکزونو کې د قرآن عظيم الشان د ترجمې او تفسير دورو لړۍ پيل شوه



د ارشاد، حج او اوقافو وزارت له لوري، د هېواد په لويو نظامي مرکزونو کې د قرآن عظيم الشان د ترجمې او تفسير دورو لړۍ پيل شوه. د ارشاد، حج او اوقافو وزارت په رارسېدلي خبرپاڼه کې راغلي، چې په همدې مناسبت د جوړو شويو مراسمو په پيل کې، د جوماتونو عمومي رئيس مولوي محمد اشرف حقاني ويلي ،چې د ارشاد، حج او اوقافو وزارت په نوښت او د اسلامي امارت د مشرتابه له لارښووني سره سم، د قرآن کريم د ترجمې او تفسير دورې د شعبان المعظم مياشتې له لومړۍ نېټې څخه پيل او د رمضان المبارک تر ۲۵مې پورې به د هېواد په لويو نظامي مرکزونو کې دوام وکړي چې د ملي راډيو ټلويزيون له لارې به په پښتو او دري ژبو نشر شي.وروسته د ارشاد، حج او اوقافو وزارت ... ۳مخ

## امارت اسلامی:

# پول افغانی ارزش خود را حفظ کرده است

به دنبال تعلیق کمک‌های مالی امریکا به افغانستان و افزایش بهای دالر در برابر افغانی، امارت اسلامی، می‌گوید که با اقدام‌ها و سیاست‌های معقول، ارزش پول افغانی را حفظ کرده است.ذبیح‌الله مجاهد، سخنگوی امارت اسلامی، به شهروندان اطمینان می‌دهد که پول افغانی هرگز ارزش خود را از دست نخواهد داد. او می‌افزاید: ((تمامی ارگان‌های امارت اسلامی در این راستا دست به کار شدند و علت‌های این مشکل را دریافته اند؛ مردم افغانستان مطمئن باشند که کرنسی شان با ثبات است و کسی نمی‌تواند کنترول آن را به دست بگیرد.))بانک مرکزی افغانستان نیز، می‌گوید که با لیلام دالر، پیشگیری از قاچاق پول و وضع محدودیت بر انتقال دالر به بیرون از کشور، توانسته ارزش پول افغانی را حفظ کند.



حسیب‌الله نوری، سخنگوی این بانک، می‌گوید: ((بانک مرکزی افغانستان با عملی‌کردن سیاست‌های معقول بانکی و جلوگیری از قاچاق پول، ارزش افغانی را حفظ کرده.))شماری از آگاهان مسائل اقتصادی، با مثبت‌خواندن راهکارهای امارت اسلامی برای حفظ ارزش افغانی، می‌گویند که برای حل این مشکل نیاز است برنامه‌های جدی روی دست گرفته شود.

عبدالنصیر رشتیا، آگاه مسائل اقتصادی، می‌گوید: ((حکومت باید تمام سیاست‌های خود را به رونق تولید داشته باشد؛ متکی به صادرات و تولیدات باشیم؛ سرمایه‌گذاری بیرونی شود؛ سیاست‌های صادرات محور خلق ارز است؛ تزریق پول به بازار کوتاه‌مدت است.)) امارت اسلامی، دراین روز ها در حکمی از شهروندان خواسته که در دادوستد شان از پول افغانی کار بگیرند. در این حکم همچنان آمده است افرادی که به بیرون از افغانستان میروند، نمی‌توانند بیشتر از ۵۰۰ دالر را از طریق مرزهای زمینی و پنج هزار دالر را از طریق میدان‌های هوایی، انتقال دهند.

# ننګرهار کې د يو کانال رغنيزې چارې بشپړې شوې

په ننګرهار کې د پېښو پروړاندې د چمتووالي رياست مسئولين وايي، چې د دې ولايت په حصارک ولسوالۍ کې د ۴۸ زره امريکايي ډالرو په لګښت د يوه کانال د جوړېدو چارې بشپړې شوې دي. د مسئولينو په خبره دغه کانال د يادې ولسوالۍ په معين خېلو کلي کې د (ډي آر سي) موسسې په مالي ملاتړ جوړ او ګټې اخيستنې ته سپارل شوی دی. د سرچينې د معلوماتو له مخې، دغه کانال ۵۰۰ متره اوږدوالی لري چې په کې د ۵ پلچکونو او ۱۵ دروازو جوړول شامل دي. د يادونې وړ ده، چې د يادې پروژې چارې په ۳ مياشتو کې بشپړې شوي چې په کې ۱۴۷ کسانو ته د کار زمينه هم برابره شوې وه.

# خوست کې د ۱۳ تنو وژنه؛ (( ښکېلوکسانو ته دې سخته سزا ورکړل شي))

د خوست د عليشيرو او تريزيو ولسوالۍ د بوخانه سيمه کې د ۱۳ وژل شويو کسانو د کورنۍ غړي او خواخوږي په ياده پېښه کې د ښکېلو کسانو د نيولو او سزا ورکولو غوښتنه کوي.د وژل شويو کسانو د کورنۍ يوه غړي ټيکه‌خان ماهر رسنيو ته ويلي، له چا سره شخصي دښمني نه‌لري او ښکېلو کسانو ته د سختې سزا غوښتنه کوي.نوموړي وايي: (( زموږ له هېچا سره دښمني




نه‌وه، هېڅ بد مو نه‌لرل، دوی اوس څو کسان د پېښې په تړاو نيولي، ولسوالۍ ته يې وړي، خو دا معلومات نشته... ۳مخ

# بدخشان کې د ۱۳۸ ميليونو افغانيو په ارزښت برښنايي وسايل پېرل شوي

د بدخشان ولايت د برښنا شرکت د دې ولايت د مرکز او بهارک ولسوالۍ زياترو سيمو ته د برښنا رسولو په موخه د ۱۳۸ ميليونه ۴۱۱ زره افغانيو په ارزښت بېلابېل برښنايي وسايل پېرلي دي. د مسئولينو په خبره په دغو تجهيزاتو کې ۱۲۰۸ پايې او ۸۳ قلمه اړين وسايل شامل دي. ورته وخت کې د برښنا شرکت مسئولين وايي،



چې په پېرل شويو وسايلو کې ترانسفارمرونه، فلزي پايې، د مسو او المونيمو کېبلونه، تيمپولونه ... ۳مخ

# فراه کې د غواګانو ۷۳ توليدي فارمونه شتون لري

د فراه ولايت د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ رياست مسئولين وايي، چې په دغه ولايت کې د غواګانو ۷۳ توليدي فارمونه شتون لري او په ورځنې ډول له هر فارم څخه سلګونه کيلوګرامه شيدې راټولېږي. د ياد رياست مسئولين وايي، چې د خصوصي سکټور په برخه کې د غواګانو ۷۳ فارمونه ثبت دي او د غوښو او شيدو... ۳مخ

# د هلمند ګرشک کې عامه کتابتون پرانيستل شو

د هلمند په ګرشک ولسوالۍ کې د ياد ولايت د اطلاعاتو او فرهنګ رياست له لوري عامه کتابتون جوړ اولا وړمه ورځ ګټې‌اخيستنې ته سپارل شوی دی.د اطلاعاتو او فرهنګ



رياست د فرهنګ او ګرځندوی آمر مولوي سلطان محمدحنيف وايي ،چې دې کتابتون کې د بېلابېلو برخو شاوخوا ۳۰۰۰ کتابونه موجود دي.نوموړي وويل: (( موږ هلمند کې د ښوونيزو او فرهنګي مرکزونو د ودې لپاره هڅې کوو. د ګرشک عامه کتابتون د دې لړۍ يوه برخه ده چې شاوخوا درې زره ټوکه کتابونه لري. په نږدې راتلونکي کې به د کتابونو شمېر نور هم زيات کړو.))د اطلاعاتو او فرهنګ رئيس حافظ عبدالباري راشد وويل:... ۳مخ

# هرات کې د ۲ لويو دروازو د جوړولو چارې بشپړې شوې




د هرات ښار د اسلام‌قلعه او تورغونډۍ په لارو کې د ۱.۸ ميليونه افغانيو په لګښت د دوو لويو دروازو د جوړېدو چارې بشپړې شوې دي.د انجيل ولسوالۍ ښاروال مولوي نعمت الله رحيمي د پرانيستې په مراسمو کې وويل: (( دغه دروازې په امنيتي کمرو او روښنايي سيستمونو سره سمبالې دي چې د ښار د امنيت او ښکلا لپاره ډېرې مهمې دي.)) ده وويل: (( د هرات ښار د پرمختګ لپاره د خصوصي سکټور ونډه ستايو او له سوداګرو مو غوښتنه داده چې د نيالګيو کښېنولو په موسم کې همکاري وکړي.)) ورته مهال د سيمې اوسېدونکو د يادو دروازو پر جوړېدو خوښي ښودلې او په راتلونکي کې يې د پراختيايي پروژو د پلي کولو غوښتنه کړې ده.

# امريکا کې د الوتکې د ټکر پېښې ۲۸ مړي له سيند څخه را اېستل شوي

د راپورونو له مخې واشنګټن ډي سي ته نږدې رونالډ ريګن هوايي ډګر ته څېرمه د يوې مسافروړونکې الوتکې او يوې پوځي څرخکې له ټکر وروسته په سيمه کې د لټون او ژغورنې پراخ عمليات روان دي. د امريکا د فدرالي هوايي چلند اداري ويلي، چې دا مسافروړونکې الوتکه په پوټاميک سيند کې راغورځېدلې ، چې لاهم د پاټې کسانو د لټون عمليات روان دي. امیریکن آيرلاينز ويلي ،چې په راغورځيدلې ... ۳مخ